

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# پښتو

## دویم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لومړی

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# انځوریزه الفبا

**موخه:** د انځوریزې الفبا تکرار.



ا

انار



آ

آس



ب

باز



پ

پاڼه



ت

توت



ټ

ټال



ث

ثریا



ج

جوار



چ

چترۍ



ح

حج



خ

خیمه



څ

څوکۍ



ځ

ځاله



د

دیگ



ډ

ډنډ



ذ

ذره بین



ر

رود



ړ

ړوند



ز

زمری



ژ

ژمی



ږ

ږمنځ



س

ساعت



ش

شات



ښ

ښکر



ص

صابون



ض

ضعیف



ط

طوطي



ظ

ظرفونه



ع

عینکې



غ

غوا



ف

فیل



ق

قلم



ک

کور



گ

گل



ل

لړم



م

مور



ن

ناک



ڼ

مڼه



و

وزه



ه

پیاله



هـ

هیلۍ



ی

منګی



ي

مڼي



ي

منګي



ۍ

څپلۍ



ئ

ولیکئ

# لومړی لوست

## الله جل جلاله

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د لوی الله جل جلاله پېژندنه.





**پوښتنې**:

ـ تاسو ویلای شئ چې موږ چا پیدا کړي یو؟

ـ الله جل جلاله له موږ څخه پرته نور کوم شیان پیدا کړي دي؟

**الله جل جلاله یو دی.**

**موږ د الله جل جلاله بنده ګان یو.**

**ټول مخلوقات الله جل جلاله پیدا کړي دي.**

**کعبه شریفه د مسلمانانو قبله ده.**

**موږ د الله جل جلاله اطاعت او عبادت کوو.**



## فعالیتونه:

ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ ځو زده کوونکي دې د تختې پر مخ د لاندې شکلونو له تورو څخه بشپړې کلمې جوړې کړي.

**لکه: ف ـ ي ـ ل ← فيل**



م ـ ر ـ غ ـ ۍ



غ ـ ر



غ ـ و ـ ا



ل ـ م ـ ر

ـ زده کوونکي دې د متن جملې د تختې پر مخ مشق او تمرين کړي.

ـ په لوست کې داسې کلمې پيدا کړي چې په پيل، منځ او پای کې يې د الف (ا) توری راغلی وي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| اطاعت | فرمانبرداري |
| عبادت | بندګي |
| مخلوقات | پيدا شوي موجودات |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې وليکي.

دويم لوست

# حضرت محمد ﷺ

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د حضرت محمد ﷺ د لوړ شخصیت پېژندل.





**پوښتنې**:

ـ څوك ويلای شي چې زموږ د ګران پيغمبر نوم څه دی؟

ـ ويلای شئ چې قرآن کريم د الله ﷻ له خوا پر چا نازل شوی دی؟

**حضرت محمد ﷺ زموږ پيغمبر دی.**

**قران کريم د الله ﷻ کتاب دی.**

**قرانکريم پر حضرت محمد ﷺ نازل شوی دی.**

**حضرت محمد ﷺ د ډېرو ښو اخلاقو خاوند و.**

## فعالیتونه:

ځو زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ځو تنه زده کوونکي دې له ورکړل شوو تورو څخه د تختې پر مخ کلمې جوړې او بيا دې ولولي.

م ـ ح ـ م ـ د ←محمد          ن ـ ا ـ ز ـ ل ← ...............

پ ـ ی ـ غ ـ م ـ ب ـ ر ←...............          ا ـ ل ـ ل ـ ه ← ...............

ك ـ ت ـ ا ـ ب ←...............

زده کوونکي دې په لاندې کلمو کې بې ټکي کلمې په نښه کړي:

**الله ـ حضرت ـ محمد ـ دی ـ کتاب ـ سم ـ نازل.**

ـ که د (کتاب) په کلمې کې د (ت) توری پر (ب) بدل شي، کومه کلمه ترې جوړيږي؟

ـ زده کوونکي دې په وار سره خپل نومونه په تورو وويشي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست د متن له مخې داسې کلمې پيداکړي چې د (ر) توری پکې راغلی وي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# علم

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او له علم او پوهې سره آشنا کېدل او د خبرو ورټیا پیدا کول.





**پوښتنې**:

ـ ځوک ویلای شي چې موږ د څه لپاره درس لولو؟

ـ ځوک ویلای شي چې موږ په ښوونځي کې څه زده کوو؟

## علم پوهې ته وايي.

## ښوونځی د زده کړې ځای دی.

## د علم زده کړه پر هر مسلمان فرض ده.

## زه درس لولم چې پوهه تر لاسه کړم.

## پوهه د ښه ژوند لپاره ډېره ضروري ده.



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې د چوکاټ له تورو څخه په خپلو کتابچو کې کلمې جوړې کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ع | ل | م | |
| ل | و | ل | م |
| ل | و | س | ت |

څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د (ښوونځی، ځای، درس او فرض) کلمې دې په تورو واړوي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (پوهه، انسان، علم، زده کړه، ښوونځی، لولم) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په تورو واړوي.

## څلورم لوست

# کتاب

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د کتاب په ارزښت پوهېدل.





**پوښتني**:

ـ څوک ویلای شئ چې په انځور کې څه شی وینئ؟

ـ ویلای شئ چې مور ولې کتاب لولو؟

ـ له کتاب څخه څه زده کولای شو؟

**دا درسي کتاب دی.**

**زه هره ورځ کتاب لولم.**

**کتاب زموږ ښه ملګری دی.**

**موږ خپل کتابونه ښه او پاک ساتو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه جمله ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د کتاب په اړه دې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې په متن کې څو داسې کلمې پیدا کړي چې څلور توري ولري، لکه: لولم

زده کوونکي دې د لاندې انځورونو نمونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.





## کورنی دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

پنځم لوست

# د سلام اداب

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د سلام اچولو پر آدابو پوهېدل.





**پوښتنې**:

۱ــ په پورتني انځور کې څه وینئ خبرې پرې وکړئ؟

۲ــ تاسې چاته سلام اچوئ؟

**سلام اچول سنت دي.**

**د سلام لفظ ((السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ)) او ځواب یې ((وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاتهُ)) دی.**

**سلام اچول د خلکو ترمنځ مینه پیدا کوي.**

**موږ خپلې مور، پلار، ښوونکو او ټولو ته سلام اچوو.**



## فعالیتونه:

ـ ځو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي په مرسته متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ ځو تنه زده کوونکي دې د تختې پر مخ لاندې کلمې په تورو واړوي، لکه:

**سلام ← س ـ ل ـ ا ـ م**

| | | | |
|---|---|---|---|
| **ټول** | **مور** | **سنت** | **ځواب** |
| **پلار** | **مینه** | **پیدا** | **خلک** |

ـ دوه - دوه زده کوونکي دې د سلام او د هغه ځواب په خپلو منځونو کې تمرین کړي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمو ته پاملرنه وکړي چې له ځو غږونو (څپو) څخه جوړې شوې دي،لکه:

**(میـ ـ نه) (س ـ لام) (پیـ ـ دا) (ا ـ چ ـ وو)**



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په لوست کې داسې کلمې پیدا کړي چې د (م) توری ولري او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

شپږم لوست

# ښه زده کوونکی

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د زده کوونکو بلدتیا له ښو کړو وړو سره.





**پوښتني**:

ـ په پورتنیو انځورونو کې څه شی وینئ؟ خبرې پرې وکړئ.

ـ ستاسو په نظر ښه زده کوونکی چاته ویل کیږي؟

**ښه زده کوونکی سهار وختي له خوبه پاڅیږي، لومړی اودس کوي. خپل غاښونه مینځي، بیا د لمانځه لپاره مسجد ته ځي. ورزش کوي. د مور، پلار، ښوونکو او مشرانو درناوی کوي. خپل درسونه لولي. له خپلو ملګرو سره ښه چلند کوي.**



**فعالیتونه:**

ـ یو یو زده کوونکی دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او ودې وايي چې هر سهار کوم کارونه کوي؟

ـ زده کوونکي دې په متن کې هغه کلمې پیدا کړي چې د (س) توری پکې راغلی وي او پر تختې دې مشق او تمرین کړي.

ـ زده کوونکي دې د مور، پلار، مسجد، سهار او ملګرو کلمې د تختې پر مخ ولیکي او په ځپو دې وویشي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| درناوی | احترام |
| چلند | رویه |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د ښوونځي ترانه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او له ښوونځي سره مینه پیدا کول.





**پوښتنې**:

ـ ویلای شئ چې زده کوونکي په ښوونځي کې څه کوي؟

ـ آیا د ښوونځي په اړه موکومه ترانه زده ده؟

ښوونځی مې دویم کور دی
ټولګیوال مې لکه ورور دی

ځومره ښکلې یې باغچه ده
سر تر پایه تکه شنه ده

ډېر زړه سواند یې معلمان دي
مهربانه انسانان دي

پر مور هېڅ نه په قارېږي
له ګناه مو راتېرېږي

د ښوونکو احترام کړو
په اخلاص ورته سلام کړو

(محمد عثمان نژند)



## فعالیتونه:

ـ یو زده کوونکی دې ترانه په ښکلي غږ ولولي او نور دې وروسته تکرار کړي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د خپل ښوونځي په اړه خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې له متن څخه په استفادې سره له لاندې توړو څخه د تختې پر مخ بشپړې کلمې جوړې کړي.

ـ **ښوو**... ـ **ښکل**... ـ **گنا**...

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ترانې بیتونه د تختې پر مخ مشق اوتمرین کړي.

ـ لاندې نیمگړې جملې دې د تختې پر مخ د چوکاټ په مناسبو کلمو سره بشپړې کړي.

| | |
|---|---|
| ...................... ښوونځی خوښ دی. | ټولگیوال |
| ...................... راباندې گران دي. | ښوونکی |
| مور د ...................... درناوی کوو. | زما |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن څو ځلې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# ښوونکی

**موخه**: د متن سم لوستل او لیکل او د ښوونکي د لوړ مقام پېژندل.






**پوښتنې**:

ـ آیا د خپلو ښوونکو نومونه مو زده دي؟

ـ ستاسو په نظر موږ ولې د ښوونکو درناوی وکړو؟

**ښوونکی موږ ته لیک او لوست را زده کوي.**

**ښوونکی زموږ په روزنه کې ډېر زیار باسي.**

**موږ د ښوونکي خبرې منو او غوږ ورته نیسو.**

**موږ د ښوونکي درناوی کوو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې د یو بل په مرسته د لوست متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې د ښوونکي د لوړ مقام په هکله له یو بل سره خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې د تختې پر مخ په تورو واړوي.

ـ **پوهه** ـ **زیار** ـ **موږ** ـ **خبرې** ـ **ښوونکی**

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره پورته کلمې په جملو کې مشق او تمرین کړي.

ـ زده کوونکي دې د جملو تش ځایونه د چوکاټ د کلمو په کارولو سره د تختې پر مخ بشپړ کړي.

ـ موږ له ښوونکي څخه .................... زده کوو.

ـ زه .................... لولم.

ـ ښوونکي پر موږ ډېر .................... دي.

| |
|---|
| کتاب |
| لیک او لوست |
| علم |
| مجله |
| گران |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## نهم لوست

# پسرلی

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د پسرلي د موسم پېژندل او په گټو یې پوهېدل.








**پوښتنې**:

ـ څوک ویلای شي چې پسرلی دکال څووم فصل دی؟

ـ خلك په پسرلي کې کوم کارونه کولای شي؟

**پسرلی دکال لومړی فصل دی، په پسرلي کې هوا ښه وي.**

**باغونه شنه او گلان غوړېږي. مرغان په ونو او نورو ځایونو کې ځالې جوړوي.**

**بزگران په خپلو ځمکو کې کار کوي.**

**په پسرلي کې نیالگي ایښودل کېږي.**

**موږ باید د ایښودل شوو نیالگیو ساتنه وکړو.**



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې په خپلو منځو کې لوست ولولي او بیا دې یو تن د ټولګي مخې ته راشي او لوست دې په لوړ غږ ولولي.

ــ زده کوونکي دې د پسرلي په اړه لنډې خبرې وکړي.

ــ زده کوونکي دې په لوست کې درې حرفي کلمې پیدا او هغه دې د املا په توګه د تختې پر مخ ولیکي.

ــ زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې راوړي:

**پسرلی** **ګلان** **نیالګي**

| لغت | معنا |
|---|---|
| فصل | موسم |
| غوړېږي | شنه کېږي |
| بزګران | دهقانان |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې دخپلو کورنیو د غړو په مرسته د پسرلي په هکله څو جملې ولیکي.

# ټوکه

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د زده کوونکو د ادبي ذوق پیاوړتیا.





**پوښتنې**:

ــ له تاسو څخه د چا کومه ټوکه زده ده؟ خپلو ټولګیوالو ته یې ووایئ.

ــ آیا ټوکې مو خوښېږي؟

**یو ناروغ ډاکټر ته ورغی او ورته یې وویل:**

**ناروغ یم، ګېډه مې خوږېږي.**

**ډاکټر ترې پوښتنه وکړه: څه شی دې خوړلي دي؟**

**ناروغ وویل: سوې ډوډۍ.**

**ډاکټر وویل: لومړی دې د سترګو علاج وکړه، ځکه که سترګې دې روغې وای، سوې ډوډۍ به دې نه خوړه.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ زده کوونکي دې د متن په لوست کې داسې کلمې پیداکړي چې د (و) توری په کې وي، بيا دې په تختې وليکي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي، که کومه ټوکه يې زده وي، نورو زده کوونکو ته دې وواييي.

ـ لاندې کلمې دې په خپلو کتابچو کې په تورو واړوي، لکه:

| | |
|---|---|
| ناروغ ـ | ن ـ ا ـ ر ـ و ـ غ |
| ډاکټر | |
| سوې | |
| سترګې | |

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن کلمې د املا په توګه پر تختې مشق او تمرين کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې وليکي.

# افغانستان

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، ليکل او د خپل هېواد پېژندل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو ويلای شئ چې موږ ولې له خپل هېواد سره مينه لرو؟
ـ ستاسو په نظر موږ د خپل هېواد د ودانولو لپاره بايد څه وکړو؟

**زموږ د ګران هېواد نوم افغانستان دی.**

**افغانستان پر موږ ګران دی.**

**زموږ هېواد لرغونی تاريخ او نوميالي شخصيتونه لري.**

**افغانستان لوی سيندونه او جګ غرونه لري.**

**موږ په علم او پوهې خپل هېواد ودانوو.**

## زموږ د هېواد ځینې تاریخي ځایونه


د هلمند بست کلا


د غور منار جام


د پغمان طاق ظفر



### فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي، د خپل کلي او ځای نومونه دې واخلي.
ـ څو زده کوونکي دې په متن کې هغه کلمې په نښه کړي چې د الف (ا) په توري پیل شوې وي، بیا دې د ټولګي مخې ته راشي او پر تختې دې ولیکي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره لاندې کلمې په څپو ووېشي او پر تختې دې ولیکي، لکه:

**باغونه، غرونه، هېواد، پوهه**

| معنا | لغت |
| --- | --- |
| پخوانی | لرغونی |
| اوچت | جګ |



### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د کورنیو د غړو په مرسته د هېواد د څو ښارونو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د مور او پلار حقونه

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د مور او پلار د حقونو پېژندل.





**پوښتنه**:

ـ څوك ویلای شئ چې مور او پلار پر تاسو باندې څه حقونه لري؟

**مور او پلار پر موږ ډېر حق لري.**

**مور په خپله غېږه کې روزلي یو.**

**مور او پلار له موږ سره ډېره مینه لري.**

**پلار راته خواړه او پوښاک برابروي.**

**موږ د مور او پلار درناوی کوو او خبرې یې منو.**



## فعالیتونه:

ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ د لوست په متن کې دې داسې کلمې په نښه کړي چې د (ر) توری یې په پیل او منځ کې راغلی وي، بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ ځو زده کوونکي دې په لاندې کلمو کې دوه توریزه کلمې په نښه او بیا دې د تختې پر مخ ولیکي.

ـ مور　　ـ ما　　ـ پلار　　ـخبرې　　ـ دي.

ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره د مور او پلار د حقونو په هکله خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| روزلي یو | پاللي یو |
| درناوی | احترام |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مور او پلار په هکله ځو لنډې جملې ولیکي.

## دیارلسم لوست

# بېرغ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خپل هېواد د ملي بېرغ په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ څوك ويلای شي چې زموږ بېرغ څو رنګه لري؟

ـ تاسو د بېرغ په هکله کومه ترانه اورېدلې ده؟

خوږ مې تر ځان بېرغه     لوړ دې نښان بېرغه
تل مو په سر رپېږه     ملي ارمان بېرغه
ستا شهامت به ساتو     ستا عظمت به ساتو
ته مو د پت نښه یې     د اسلامیت نښه یې
اې د افغان بېرغه     لوړ دې نښان بېرغه

(اروښاد محمد عثمان نژند)



## فعالیتونه:

ـ ښوونکی دې د بیرغ ترانه ولولي او زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره شعر ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (نښان، بیرغ، شهامت، اسلامیت) کلمې د تختې پر مخ ولیکي بیا دې په تورو واړوي، لکه:

**بیرغ ← ب ـ ې ـ ر ـ غ**

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره له لاندې تورو څخه کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي.

**(ن ـ ښ ـ ه)**

**(ر ـ پ ـ ې ـ ړ ـ ه)**

**(ب ـ ې ـ ر ـ غ)**

**(ا ـ ف ـ غ ـ ا ـ ن)**

| لغت | معنا |
|---|---|
| شهامت | مېړانه، غیرت |
| عظمت | لویوالی |
| پت | عزت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د بیرغ شعر په یادو زده کړي او په کورکې دې خپلو خویندو او وروڼو ته ووایي.

# زموږ پیسې

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او زموږ د مروجو پیسو پېژندل او د هغو ښه ساتل.





پوښتنې:

ـ تاسو په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟

ـ ویلای شئ چې زموږ د هېواد پیسې څه نومېږي؟

**زموږ د هېواد پیسې افغانۍ دي.**

**زموږ پیسې د افغانۍ (یو ګون، دوه ګون، پنځه ګون، لس ګون، شل ګون، پنځوس ګون، سل ګون، پنځه سوه ګون او زر ګون) دي.**

**زموږ د افغانۍ یوګون، دوه ګون او پنځه ګون فلزي هم شته.**

**زه خپلې پیسې بې ځایه نه لګوم.**

**موږ باید خپلې پیسې ښې وساتو.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ شي.

ـ زده کوونکي دې د لوست له متن څخه پنځه کلمې غوره کړي او بیا دې په وار سره د تختې پر مخ په تورو وویشي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د خپل هېواد د بانک نوټونو نومونه واخلي او څو تنه نور دې د عدد په توګه پرتختې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمو ته ساده جملې جوړې کړي.

ـ هېواد　　　ـ پیسې　　　ـ افغانۍ

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| شکل | بڼه |
| نه لګوم | نه مصرفوم |
| هېواد | وطن |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## پنځلسم لوست

# سید جمال الدین افغان

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د سید جمال الدین افغان د لوړ شخصیت پېژندل.





**پوښتنې**:

ـ په لوست کې د چا انځور وینئ؟

ـ آیا تاسې د سیدجمال الدین افغان نوم اورېدلی؟

**سید جمال الدین افغان د سید صفدر زوی دی.**

**د کونړ ولایت په اسعداباد کې زېږېدلی دی.**

**سیدجمال الدین زموږ د هېواد لوی عالم و.**

**هغه د مسلمانانو د بیدارۍ او یووالي لپاره ډېر کوښښونه کړي دي.**

**زه غواړم چې د هغه په څېر عالم شم.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې د لوست جملې د ښوونکي په مرسته ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په متن کې داسې کلمې پیداکړي چې د (س) توری د کلمې په سر، منځ او پای کې راغلی وي، په خپلوکتابچو کې دې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې په لوست کې څو داسې کلمې پیدا کړي چې ټکي ونه لري او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي، لکه: علم

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د سید جمال الدین افغان په هکله دې خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| عالم | پوه، دانا |
| په ځبر | په شان |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# کندهار

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د کندهار په هکله معلومات ترلاسه کول.





**پوښتنې**:

ـ تاسو په پورتني انځور کې څه وینئ؟

ـ تاسې د کندهار نوم اورېدلی دی؟

**کندهار د افغانستان یو لوی ښار دی.**

**کندهار پخوا زموږ د هېواد پایتخت و.**

**کندهار ډېر تاریخي ځایونه لري.**

**د کندهار انار او انګور ډېر مشهور دي.**

**موږ د خپل هېواد په تاریخ ویاړو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې د تختې پر مخ له ورکړل شوو تورو څخه کلمې جوړې کړي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ر | ا | هـ | د | ن | ک |
| | ن | ی | | | |
| | ا | و | | | |
| | ر | ا | | | |
| | | د | | | |

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې د تختې پر مخ د املا په توګه ولیکي.

**(ښار، انار، مشهور، کندهار، پخوا)**

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| پایتخت | د یوه هېواد مرکز |
| ویاړو | افتخار کوو |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د کندهار لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## اووه لسم لوست

# جــرگه

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د جرگې په ارزښت پوهېدل.





**پوښتني**:

ـ تاسو په پورتني انځورکې څه وینئ؟

ـ تاسې د جرگې نوم اورېدلی دی؟

**جرگه د افغانانو ملي دود دی.**

**په جرگو کې د ټولنې ستونزې هوارېږي.**

**په جرگو کې مشران راټولېږي او پرېکړې کوي.**

**مورږ د جرگو پرېکړو ته درناوی کوو.**



**فعالیتونه:**

ـ ځو زده کوونکي دې د لوست متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې له متن څخه درې حرفي کلمې پیدا او د تختې پرمخ دې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې د املا په توګه د تختې پر مخ ولیکي.

**جرګه　　　پرېکړې　　　درناوی**

ـ زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه د جرګو په هکله لنډې خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| دود | رواج |
| ستونزې | مشکلات |
| پرېکړې | فیصلې |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.

جرګه　　　ستونزه　　　مشران

# کوچیان

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کوچیانو له ژوند سره د زده کوونکو بلدتیا.







**پوښتنې**:

ــ په پورتني انځور کې څه وینئ؟

ــ آیا تاسو د کوچیانو کډې لیدلي دي؟

**کوچیان په کېږدیو کې ژوند کوي.**

**کوچیان په ژمي کې تودو او په اوړي کې سړو سیمو ته ځي.**

**کوچیان زیارکښ خلک دي.**

**د کوچیانو ژوند ستونزمن دی.**

**دوی مېږې، وزې، اوښان او نور څاروي ساتي.**

**د کوچیانو ماشومان په ګرځنده ښوونځیو کې زده کړې کوي.**



## فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست جملې د ښوونکي په مرسته ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ په چوکاټ کې دې د لاندې کلمو معناوې پیدا او په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| | |
|---|---|
| څاروي | حېوانات |
| په خبر | کوچنیان |
| ماشومان | په ډول |

ـ څو زده کوونکي دې د (اوښان، مېږې، څاروي، ژوند) کلمې په لنډو جملو کې راوړي او بیا دې پر تختې ولیکي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| زیارکښ | زحمتکښ |
| اوړی | دوبی |
| څاروي | حیوانات |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوستل شوی متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط سره ولیکي.

# د اختر ورځ

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د اختر په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ تاسې د اختر په ورځو کې څه کوئ؟

**اختر د مسلمانانو د خوښۍ ورځې دي.**

**مسلمانان په یوه کال کې دوه اخترونه لري.**

**یو یې کوچنی او بل یې لوی اختر دی.**

**موږ د اختر لمونځ په مسجدونو او عیدګاوو کې ادا کوو.**

**موږ په اخترونو کې خپلې کورنۍ او دوستانو ته د اختر مبارکي وایو.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي په مرسته د لوست جملې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ په لاندې کلموکې دې درې توريزه کلمې په نښه او بیا دې په خپلو کتابچوکې ولیکي.

| | | |
|---|---|---|
| **دوه** | **اختر** | **خلک** |
| **کال** | **ښوونکی** | **ښوونځی** |

ـ زده کوونکي دې د متن لومړی کرښه د املاء په توگه د تختې پر مخ ولیکي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې ورکړل شوو تورو څخه د تختې پر مخ کلمې جوړې کړي.

**م ـ س ـ ل ـ م ـ ا ـ ن ـ ا ـ ن** ← ...............

**ا ـ خ ـ ت ـ ر** ← ...............

**ل ـ م ـ و ـ ن ـ ځ** ← ...............

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| خوښی | خوشحالی |
| کوچنی | وړوکی |



**کورنی دنده:** زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

شلم لوست

# اتڼ

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د ملي اتڼ په اړه معلومات لاس ته راوړل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو په پورتني انځورکې څه وینئ؟

ـ تاسو کله اتڼ لیدلی دی؟

ـ خلك په کوم وخت کې اتڼ کوي؟

**اتڼ د افغانانو ملي دود دی.**

**زموږ خلک د خپلو ملي ورځو په لمانځلو کې اتڼونه کوي.**

**د خوښیو او خوشحالیو په مراسمو کې هم اتڼونه کېږي.**

**افغانان له اتڼ سره مینه لري.**



## فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي په مرسته متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په تورو واړوي. (افغانان، اتڼ، ملي، ډول)

ـ زده کوونکي دې په چوکاټ کې له ورکړل شوو تورو څخه د تختې پر مخ کلمې جوړې کړي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ← افغان | ن | ا | غ | ف | ا |
| | | | ي | ل | م |
| | | | د | و | د |
| | | | ڼ | ت | ا |
| | | ه | ن | ي | م |

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په ساده جملو کې راوړي:

(**خلک، اتڼ، مینه**)



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# يووالی

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، ليکل او د يووالي او اتفاق په معنا او ګټو پوهېدل دي.





**پوښتنې**:

ــ تاسو په پورتني انځور کې څه شی وينئ؟

ــ آيا تاسو د يووالي په معنا پوهېږئ؟

**يوه سپين ږيري خپلو زامنو ته د لښتو يوه ګېډۍ ورکړه چې ماته يې کړي، خو زامنو يې ګېډۍ ماته نه شوه کړای. بيا يې پلار په خپله يوه يوه لښته ماته کړه او ورته يې وويل: که په خپلو منځو کې بې اتفاقه شئ، نو ما غوندې سپين ږيری به هم تاسو د دې لښتو په څېر مات او له منځه يوسي.**



## فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره متن د ښوونکي په مرسته ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې د لوست له متن څخه داسې کلمې پیداکړي چې د (و) توری په کې راغلی وي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې له ورکړل شوو تورو څخه کلمې جوړې او بیا دې پر تختې ولیکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ل ـ ښ ـ ت ـ ه | | ز ـ ا ـ م ـ ن | |
| ا ـ ت ـ ف ـ ا ـ ق | | م ـ ا ـ ت ـ ه | |
| ن ـ ا ـ ر ـ و ـ غ | | گ ـ ي ـ ډ ـ ی | |

ـ زده کوونکي دې لاندې جمله د املاء په توگه ولیکي:

**یووالی د یوه ملت او قوم زور او قوت دی.**

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| یووالی | اتفاق |
| گېډۍ | کوده |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دوه ویشتم لوست

# د کال فصلونه

**موخه**: د کال د څلورو فصلونو پېژندل او د دې لوست سم لوستل او لیکل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو پوهېږئ چې یو کال څو فصلونه لري؟

ـ تاسو کولای شئ چې په پورتنیو انځورونو کې د اوړي فصل وښیئ؟

**یو کال څلور فصلونه لري: پسرلی، اوړی، منی، ژمی.**

**په پسرلي کې هوا ښه وي. هر څوک په کار پیل کوي.**

**په دوبي کې هوا توده وي.**

**په مني کې هوا معتدله وي.**

**په ژمي کې هوا ډېره سړه او په زیاترو ځایونو کې واوره اوري.**



## فعالیتونه:

ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره د ښوونکي په مرسته د لوست جملې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې انځورونو ته وګوري او د هغو نومونه دې پر تختې ولیکي.






ـ زده کوونکي دې د متن په لوستلو سره د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو د تختې پر مخ بشپړ کړي.

یو کال .......... فصلونه لري.

په پسرلي کې .......... ښه وي.

په اوړي کې هوا ډېره .......... .

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| پیل | شروع |
| اوړی | دوبی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د اونۍ ورځې

**موخه**: د دې لوست د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د اونۍ د ورځو د نومونو پېژندل.

| د اونۍ د ورځو نومونه |
| --- |
| شنبه |
| یکشنبه |
| دوشنبه |
| سه شنبه |
| چهارشنبه |
| پنجشنبه |
| جمعه |



**پوښتنې**:

ـ تاسو ویلی شئ چې یوه اونۍ څو ورځې ده؟

ـ تاسې د اونۍ د ورځو نومونه اخیستلای شئ؟

## یوه اونۍ اووه ورځې ده.

## شنبه، یکشنبه، دوشنبه، سه شنبه، چهار شنبه، پنجشنبه او جمعه.

## مور په اونۍ کې شپږ ورځې ښوونځي ته ځو.

## د جمعې په ورځ ښوونځي رخصت وي.



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د اوونۍ د ورځو نومونه دې د تختې پر مخ ولیکي.

ـ زده کوونکي دې په لوستل شوي لوست کې داسې کلمې پیداکړي چې د (ش) توری په کې راغلی وي اوبیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د اوونۍ د ورځو نومونه یو بل ته املا ووايي او پر تختې دې ولیکي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| اوونۍ | هفته |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د اوونۍ د ورځو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## څلورویشتم لوست

# ټوکه

**موخه**: د ټوکې د متن سم لوستل، لیکل او د ټوکې په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟

ـ تاسو کوم وخت کومه ټوکه اورېدلې ده، هغه ویلای شئ؟

**یو سړی ونې ته ختلی و. چا ور څخه پوښتنه وکړه، چې څه کوې؟ سړي ځواب ورکړ: توتان خورم. هغه ورته وویل: ته خو د چنار ونې ته ختلی یې، سړي وویل: توتان مې په جیب کې دي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې لوست د یو بل په مرسته ولولي او بیا دې یو تن د ټولګي مخې ته راشي او لوستل شوې ټوکه دې په خپله ژبه ټولګیوالو ته واوروي.

ـ زده کوونکي دې په لوست کې درې توريزې کلمې پیدا او د تختې پر مخ دې ولیکي.

ـ لاندې کلمې دې په ساده جملو کې راوړي.

**سړی** **توتان** **چنار** **ختلی**

زده کوونکي دې د یوه توري په راوړو سره لاندې کلمې بشپړې کړي، لکه:

**ټو**... ← **ټوکه**

ـ **سړ**... ـ **چنا**... ـ **خور**... ـ **توتا**....



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې لوست په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## پنځه ویشتم لوست

# باران

**موخه**: د باران په ارزښت او ګټو پوهېدل او د دې لوست سم لوستل او لیکل.





**پوښتنې**:

ــ تاسو ویلای شئ چې باران په کوم فصل کې زیات ورېږي؟

ــ ستاسو په نظر که باران ونه ورېږي څه کیږي؟

**بارانه ښه ورېږه**
**زما په زړه ورېږه**
**ګلونه سمه غر کړه**
**په سمه، غره ورېږه**
**باران هوا پاکوي**
**باران فضا پاکوي**
**دوړې ګردونه پاک شي**
**باران دنیا پاکوي**

**(ارواښاد غلام حضرت روغمن)**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې د باران ترانه د یو بل په مرسته ولولي.

ـ که د غره په کلمه کې د (غ) د توري پر ځای د (س) توری ولیکو، کومه کلمه ترې جوړېږي؟

ـ زده کوونکي دې د باران ترانه له یاده زده کړي.

ـ زده کوونکي دې د ترانې له مخې څو کلمې پیدا کړي چې له دریو تورو څخه جوړې شوې وي، بیا دې د تختې پر مخ ولیکي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| فضا | هوا |
| دوړې | ګردونه |

ـ زده کوونکي دې پورتني لغتونه په ساده جملو کې راوړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د باران ترانه په ښکلي خط سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د اوبو ګټې

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د پاکو اوبو په ارزښت او ګټو پوهېدل.







**پوښتنې**:

ـ له تاسو څخه څوک ویلای شي چې پاکې اوبه چېرې پیداکیږي؟

ـ د پاکو اوبو د ګټو په هکله څه ویلای شئ؟

**اوبه د الله جَلَّ جَلالُه لوی نعمت دی.**

**انسانان او ټول ژوندي موجودات بې اوبو ژوند نشي کولای.**

**د پاکو اوبو څښل روغتیا ته ګټه لري.**

**موږ باید د اوبو له بې ځایه لګښت څخه مخنیوی وکړو.**



**فعالیتونه:**

ــ زده کوونکي دې لوست ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ــ لاندې کیسې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او ځواب دې پیدا کړي.

تشه ځي، ډکه راځي. (                    )

ــ یو زده کوونکی دې د (انسانان، څاروي، بوټي، روغتیا) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ــ زده کوونکي دې لاندې کلمې په ساده جملو کې وکاروي!

اوبه                پاک                ګټې

ــ څو زده کوونکي دې د اوبو د ګټو په هکله لنډې خبرې وکړي.



**کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د لوست له متن څخه څو کلمې خوښې او بیا دې په خپلو کتابچو کې ورته جملې جوړې کړي.

## اوه ویشتم لوست

# لــمر

**موخه**: زده کوونکي د لمر په ارزښت او گټو وپوهیږي، د لمر لوست سم ولولي او ویې لیکي.





**پوښتنه**:

ــ تاسو ویلای شئ چې لمر له کومې خوا راخیژي او کوم لور ته لویږي؟

**لمر ډېره رڼا او تودوخه لري.**

**لمر په خپله رڼا ټول ځایونه روښانوي.**

**د لمر په تودوخې غلې او مېوې پخېږي.**

**انسانان او ټول ژوندي شیان لمر ته اړتیا لري.**

**بې له لمر څخه ژوند نشته.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې د لمر لوست په خپلو منځونو کې په سمه توګه ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې له تورو څخه کلمې جوړې او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ل ـ م ـ ر | لمر............... | ت ـ و ـ د ـ و ـ خ ـ ه | ............... |
| ش ـ ي ـ ا ـ ن | ............... | ر ـ ڼ ـ ا | ............... |
| اـ ن ـ س ـ ا ـ ن ـ ا ـ ن | ............... | م ـ ې ـ و ـ ې | ............... |

ـ زده کوونکي دې د متن لومړۍ جمله د املاء په ډول ولیکي.

ـ لاندې کیسی دې ولولي او ځواب دې پیدا کړي.

د ورځې وي او د شپې نه وي.(                )

ـ زده کوونکی دې د متن کلمې د تختې پر مخ ولیکي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| تودوخه | ګرمي، حرارت |
| اړتیا | ضرورت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د وخت ارزښت

**موخه**: د وخت په ارزښت پوهېدل او د متن لوستل اولیکل.









**پوښتنې**:

ـ تاسو ولې ای شئ چې مو ږ څنګه کولای شو چې خپل کارونه په ټاکلي وخت سرته ورسوو؟

ـ تاسې خپل وخت په کومو کارونو کې تېروئ؟

**له وخت څخه باید ښه ګټه واخلو.**

**زه خپل وخت خوشې نه تېروم.**

**څوک چې خپل وخت بې ځایه تېروي، په ژوند کې به وروسته پاتې شي.**

**تېر شوی وخت بېرته لاس ته نه راځي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې د لوست جملې د یو بل په مرسته ولولي او بیا دې یو زده کوونکی د وخت د ارزښت په هکله لنډې خبرې وکړي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې د خپلو ورځنیو کارونو په اړه خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه په خپلو کتابچو کې کلمې جوړې کړي، لکه:

و ـ خ ـ ت .........وخت

خ ـ پ ـ ل .........   ګ ـ ټ ـ ه .........   ک ـ ا ـ ر .........

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې د تختې پر مخ په تورو ووېشي.

ژوند   وروسته   لاس   څوک   خوشې.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ګټه | فایده |
| خوشې | بې ځایه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست د متن له مخې څو کلمې غوره کړي او بیا دې په تورو ووېشي.

نهه ویشتم لوست

# د خوړلو اداب

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د خوړلو په ادبونو پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ تاسو د خوړو د آدابو په اړه څه اورېدلي دي؟

**له ډوډۍ خوړلو څخه مخکې خپل لاسونه په صابون او اوبو پاک مینځو.**

**د ډوډۍ خوړلو په پیل کې باید (بسم الله الرحمن الرحیم) ووایو.**

**خواړه باید په ښي لاس وخورو.**

**خپل خواړه باید ورو ورو وخورو.**

**خواړه باید د خپلې مخې څخه وخورو.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې د لوست جملې ولولي.

ـ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او د لوست له مخې دې داسې کلمې چې له دریو تورو څخه جوړې شوې وي، په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۱ـ.....................                ۲ـ.....................

۳ـ.....................                ٤ـ.....................

ـ دا څه شی دی؟

الوزي مرغه غوندې، نه بڼکې، نه پنجې لري، کلکې عرابې لري.

ـ زده کوونکي دې د متن له مخې د تختې پر مخ داسې کلمې ولیکي چې د (خ) توری پکې راغلی وي.



**کورنۍ دنده:**

د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# ځاروي

**موخه**: د ځينو ځارويو د نومونو پېژندل، لوستل او ليکل.






**پوښتنې**:

ـ تاسو په پورتنيو انځورونوکې کوم ځاروي وينئ؟ نومونه يې واخلئ.

ـ تاسو ويلاى شئ چې کوم ځاروي په کور کې ساتل کېږي؟

**زموږ خلک کورني ځاروي ساتي.**

**د ځارويو ساتل گټې لري.**

**خلک له ځارويو څخه ډول، ډول گټې اخلي.**

**د غوا له شېدو څخه مستې، کوچ او پنېر جوړېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې د لوست متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې د لاندې پوښتنو سم ځواب د چوکاټ په ورکړل شوو کلمو کې پیدا او بیا دې د هرې پوښتنې ترخنګ په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ غږېږي لوړ دی او بار وړي. (دا کوم څاروی دی؟)

ـ ډېره تېزه منډه وهي. ...............

ـ په ونه او دېوال په منډه خېژي. ...............

ـ ټوله شپه ویښ وي او پېره کوي. ...............

ـ زده کوونکی دې لاندې کلمې د تختې پر مخ په تورو وویشي.

خلک ـ څاروي ـ ساتي ـ ګټې ـ غوا ـ مستې ـ کوچ ـ پنېر

ـ زده کوونکي دې د کورنیو څارویو د ګټو په هکله لنډې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د خپلې خوښې د څو څارویو نومونه ولیکي.

يو دېرشم لوست

# واليبال

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، ليکل او د واليبال له لوبې سره بلدتيا.





**پوښتنې**:

ــ تاسو په پورته انځورکې څه شی وينئ؟

ــ تاسو ويلای شئ چې واليبال څه ډول لوبه ده؟

**واليبال ښه لوبه ده.**

**زده کوونکي په لوبغالي کې واليبال کوي.**

**د واليبال لوبغاړي دولس تنه وي.**

**دا لوبه ډېره په زړه پورې ده.**

**واليبال روغتيا ته ګټه رسوي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې د لوست متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه په خپلو کتابچو کې بشپړې کلمې جوړې کړي.

**والیبا　　زده　　میدا　　لوب**

ـ څو زده کوونکي دې داسې څلور کلمې د تختې پر مخ ولیکي چې د (و) توری ولري.

ـ څو زده کوونکي دې لاندې کلمې د تختې پر مخ ولیکي او بیا دې په لاندې جملو کې وکاروي.

**هلکان　　والیبال　　میدان　　لوبه**

| لغت | معنا |
|---|---|
| لوبغالی | د ورزش میدان |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې د والیبال لوست ښه ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط سره ولیکي.

دوه دیرشم لوست

# پاک خواړه

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د پاکو خوړو په ګټو پوهېدل.





**پوښتني**:

ـ تاسو په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟

ـ تاسو ویلای شئ چې پاک خواړه څه ډول خوړو ته ویل کېږي؟

**زه پاک خواړه خورم.**
**پاک خواړه روغتیا ته ګټه لري.**
**پاک خواړه د بدن په وده کې مرسته کوي.**
**ناپاک خواړه انسان ناروغه کوي.**
**خواړه باید په مناسب ځای کې وساتل شي.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې د لوست متن ولولي.

ـ ځو زده کوونکي دې له متن څخه څو کلمې پیدا کړي چې د (و) توری پکې راغلی وي.

۱ـ............ ۲ـ ............ ۳ـ ............ ٤ـ............

ـ زده کوونکي دې د لاندې کلمو په واسطه د جملو تش ځایونه د تختې پر مخ بشپړ کړي.

خورم ګټه ناروغه

ـ زه پاک خواړه .................... .

ـ پاک خواړه روغتیا ته ............لري.

ـ ناپاک خواړه انسان ........... کوي.

ـ ځو زده کوونکي دې د پاکو خوړو د ګټو په هکله لنډې خبرې وکړي.

| **لغت** | **معنا** |
| --- | --- |
| وده | نمو |
| مرسته | کمک |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپله خوښه د څو خوړو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د شاتو مچۍ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د شاتو د مچیو پېژندل.





**پوښتنې**:

ــ تاسو د شاتو مچۍ لیدلې دي؟

ــ تاسو ویلای شئ چې د شاتو له مچۍ څخه څه شی لاس ته راځي؟

**په تصویر کې د شاتو مچۍ وینو.**

**مچۍ په اتفاق ژوند کوي.**

**مچۍ شات جوړوي.**

**شات خواږه دي.**

**د شاتو خوړل روغتیا ته ګټه لري.**



**فعالیتونه**:

ـ زده کوونکي دې د لوست متن ولولي.

د لاندې کلمو متضادې کلمې دې له چوکاټ څخه پیدا او په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| | | |
|---|---|---|
| ـ خوارږه | ترخه ............... | ناروغی |
| ـ اتفاق | ............... | ترخه |
| ـ روغتیا | ............... | بې اتفاق |

ـ له لوست څخه دې هغه کلمې د تختې پر مخ ولیکي چې له څلورو تورو څخه جوړې شوې وي، لکه: خوږل

ـ زده کوونکي دې د شاتو مچیو په هکله لنډې خبرې وکړي.



**کورنی دنده**:

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې په سم خط ولیکي.

# د مېوو ګټې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د مېوو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو په پورته انځور کې کومې مېوې وینئ؟

ـ تاسې کومې مېوې پېژنئ؟ نومونه یې واخلئ.

**زموږ هېواد هر ډول مېوې لري.**

**مېوې تر خوړلو مخکې باید پاکې او مینځل شي.**

**موږ باید خامې او ناپاکې مېوې ونه خورو.**

**د مېوو خوړل روغتیا ته ډېره ګټه لري.**



## فعالیتونه:

ـ ځو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د لوست متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې د تازه مېوو نومونه واخلي او د هغو رنګونه دې ووایي.

ـ هره مېوه چې په رسمونو کې ویني، نوم دې واخلي.



.................... ............ ............ .................... ............................ ....................

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه بشپړې کلمې جوړې کړي.

| | |
|---|---|
| ا ـ ن ـ ګ ـ و ـ ر | انګور |
| ا ـ ن ـ ا ـ ر | ............... |
| ب ـ ا ـ د ـ ا ـ م | ............... |
| ګ ـ ي ـ ل ـ ا ـ س | ............... |

| لغت | معنا |
|---|---|
| خامې | اومې |
| هر ډول | هر قسم |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوست جملې سمې ولیکي.

# نصیحت

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د نصیحت په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ کله چا تاسې ته نصیحت کړی دی؟

ـ مور، ولې د مشرانو نصیحت ته غوږ ونیسو؟

**د پوهانو او مشرانو لارښوونو ته نصیحت وايي.**

**لاندې نصیحتونو ته ځیر شئ:**

**ـ د نن کار سبا ته مه پرېږدئ.**

**ـ په هر کار کې د مشرانو نصیحت ته غوږ ونیسئ.**

**ـ له خپلو دوستانو سره ښه چلند کوئ.**



## فعالیتونه:

ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره لاندې کلمې د تختې پر مخ په تورو ووښي.

**کار** **مشوره** **سبا** **مشران**

ـ زده کوونکي دې لومړۍ د چوکاټ کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې متضادې کلمې د کرښې پواسطه سره ونښلوي.

| | |
|---|---|
| مشران | بد |
| ډېر | لږ |
| ښه | کشران |

ـ لاندې کلمې په لنډو جملو کې وکاروئ.

**کار** **لار** **مشر** **سبا**

ـ زده کوونکي دې د (کار، سره، چلند، غوږ) کلمې د املاء په ډول د تختې پر مخ ولیکي.

| **لغت:** | **معنا** |
|---|---|
| نصیحتونه | پندونه |
| چلند | سلوک |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# سابه

**موخه**: د متن لوستل، ليكل او د سابو په گټو پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو په پورتني انځور کې کوم سابه وينئ؟ نومونه يې واخلئ.

ـ کوم سابه خام او کوم سابه پاخه خوړل كيږي؟

**د سبو خوړل بدن ته گټه لري.**

**سابه بايد په پاکو اوبو ومينځل شي او بيا وخوړل شي.**

**زموږ خلک ډول ډول سابه، لکه: پالک، گازرې، مولۍ، گندنه، مرچ او داسې نور کري.**

**ځينې سابه خام او ځينې هم پاخه خوړل کيږي.**



## فعالیتونه:

ـ څو تنه زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ د لاندې سابو نومونه په خپلو کتابچوکې ولیکئ.

   

.................... .................... .................... ....................

   

.................... .................... .................... ....................

ـ زده کوونکي دې د څلورو سابو نومونه واخلي چې هم خام اوهم پاخه خوړل کېږي.

ـ د لوست په متن کې درې داسې کلمې پیدا کړئ چې د (ب) توری ولري.

۱ـ .................... ۲ـ .................... ۳ـ ....................

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| سابه | ترکاري، سبزیجات |
| ځینې | بعضې |



## کورنۍ دنده:

د لوست متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکئ.

# د خپلواکۍ ورځ

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د خپلواکۍ په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**:

ــ تاسو په پورتني انځور کې څه وینئ؟

**داسد د میاشتې اته ویشتمه نېټه زموږ د خپلواکۍ ورځ ده.**

**افغانان هر کال د خپلواکۍ ورځ لمانځي.**

**دا ورځ زموږ د یووالي نښه ده.**

**موږ له خپلې خپلواکۍ سره مینه لرو.**

**موږ خپلواکي په خپلې پوهې او یووالي سره ساتو.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې ووايي چې د (خپلواکی) کلمه له څو تورو څخه جوړه شوې ده؟

ـ زده کوونکي دې داسې کلمې ووايي چې د (خ، پ، ا) توري پکې راغلي وي.

ـ له لاندې تورو څخه کلمې جوړې او د تختې پر مخ يې وليکئ، لکه:

| | |
|---|---|
| **ا ـ ف ـ غ ـ ا ـ ن** | **افغان** |
| **ک ـ ا ـ ل** | ............... |
| **خ ـ پ ـ ل ـ و ـ ا ـ ک ـ ي** | ............... |
| **و ـ ر ـ ځ** | ............... |

ـ که د (کال) په کلمه کې د (ک) توري پر ځای د (ټ، ج، خ، ش) توري وليکو، کومې کلمې ترې جوړېږي؟ پر تختې دې وليکي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| خپلواکي | آزادي |
| يووالی | اتفاق |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې وليکي.

# کورنۍ دنده

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د کورنۍ دندې په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ په انځور کې څه وینئ؟

ـ تاسې خپله کورنۍ دنده د چا په مرسته ترسره کوئ؟

**ذاکر ښه زده کوونکی دی.**

**ذاکر خپله کورنۍ دنده په ښکلي خط لیکي.**

**زه هم هره ورځ خپله کورنۍ دنده لیکم.**

**موږ خپلې کورنۍ دندې ښوونکي ته ښیو.**



**فعالیتونه:**

ـ څو زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې پر مخ یو بل ته املاء ووایي.

ـ زده کوونکي دې د لاندې کلمو څخه جملې جوړې کړي.

**کورنۍ پاملرنه ښوونکی کتابچه**

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د خپلې کورنۍ دندې د سرته رسولو په هکله نورو ته معلومات ورکړي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| کورنۍ دنده | کورنۍ وظیفه |
| ښکلي | ښایسته |



**کورنۍ دنده:** زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# سړک

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د سړك د پلي لارو په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ ستاسو په فکر سړکونه د څه لپاره جوړ شوي دي؟

**سړک هغه لار ده چې موټر او نور وسایط پرې تګ راتګ کوي.**
**د سړکونو دواړو خواوو ته پلي لارې دي.**
**په دې لارو د پلو کسانو تګ او راتګ خطر نه لري.**
**په ځینو سړکونو کې ترافیکي اشارې هم موجودې وي.**
**د اشارو د شنه څراغ په بلېدو سره پلي کسان له سړک څخه تېرېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې لوست په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې د لوست له متن څخه څو کلمې وټاکي چې د (ك) توری په کې راغلی وي، بیا دې په جملو کې راوړي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه د تختې پر مخ پوره کلمې جوړې او بیا دې په لنډو جملو کې وکاروي.

**سړ**.......... **لا** .......... **خط** ..........

ـ زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي او د لوست د متن په اړه دې په خپلو منځونو کې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست څو ځلې له خپل ځان سره ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

خلوېښتم لوست

# ماشومان

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د ښه ماشوم په صفتونو پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ ستاسو په نظر چاته ښه ماشومان ویلای شو؟

**ماشومان په هر کور کې د ګلانو په څېر دي.**

**د ماشومانو ښه روزنه د هغوی ښه راتلونکې جوړوي.**

**ښه ماشومان په خپلو درسونو کې زیار باسي.**

**د خپلو ښوونکو خبرو ته غوږ نیسي.**

**تل د مشرانو درناوی کوي.**

## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې لوست په وار سره سم ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې د لوست د متن هغه کلمې چې د (ب) توری یې په پیل او منځ کې راغلی وي، په نښه او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

ـ که د غوږ په کلمه کې د (غ) د توري پر ځای د (خ) توری ولیکل شي، څنګه لوستل کېږي؟

ـ زده کوونکي دې د لوست د متن د (درناوی ـ ماشومان ـ ګلانو ـ زیار ـ درسونه) کلمې د تختې پر مخ ولیکي او بیا دې په لنډو جملو کې وکاروي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| زیار | کوښښ |
| درناوی | احترام |

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلی خط سره ولیکي.

# ګاونډی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ګاونډي په حقونو پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ ستاسو په فکر ګاونډی چاته ویل کیږي؟
ـ ستاسو په نظر له ګاونډي سره باید څنګه چلند وکړو؟

**ګاونډیان پر یو بل ډېر حقونه لري.**
**سلیم زموږ ګاونډی دی.**
**موږ له هغوی سره ښه ناسته ولاړه لرو.**
**موږ یو له بل سره د اړتیا په وخت کې مرسته کوو.**
**ټول ګاونډیان باید یوله بل سره ښه چلند وکړي.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ګاونډیو په حقونو خبرې وکړي.

ـ که د (بل) په کلمه کې د (ب) توري پر ځای د (ت) توری راشي، څنګه لوستل کېږي؟

ـ څو زده کوونکي دې لاندې کلمې د تختې پر مخ ولیکي او په لنډو جملو کې دې راوړي.

**سلیم**　　　**ګاونډی**　　　**موږ**

| لغت | معنا |
|---|---|
| ګاونډی | همسایه |
| چلند | سلوک، رویه |
| اړتیا | ضرورت |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د انسان درناوی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د انسانانو د درناوي په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ ستاسو په نظر انسانان باید له یو بل سره څه ډول چلند وکړي؟

**ټول انسانان د الله جل جلاله مخلوقات دي.**

**انسانان د درناوي وړ دي.**

**ښه زده کوونکي د انسانانو درناوی کوي.**

**انسانان باید یو د بل حقونه وپېژني.**

**انسانان د اړتیا په وخت کې له یو بل سره مرسته کوي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې متن د ټولګي په مخکې ولولي او د ښوونکي په مرسته دې خپلې تېروتنې سمې کړي.

ـ زده کوونکي دې د لاندې کلمو مفرد شکل له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو مخې ته دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| | |
|---|---|
| ځوان | انسان |
| ماشوم | مشر |

ـ انسانان .................... ـماشومان ....................

ـ ځوانان .................... ـ مشران ....................

ـ که د مشرانو په کلمه کې د (م) توري پرځای د (ک) توری ولیکو، څنګه لوستل کېږي؟

ـ زده کوونکي دې په وار سره د انسانانو د درناوي په هکله لنډې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې کلمو څخه د تختې پر مخ لنډې جملې جوړې کړي.

ـ زده کوونکي .................... ـ درناوی ....................

ـ انسا نان ........................ ـ خبرې ....................



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن ښه ولولي او بیا دې په ښکلی خط سره په خپلو کتابچو کې ولیکي.

درې څلوېښتم لوست

# د خبرو اداب

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د خبرو په ادابو پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ ستاسو په نظر که څوک خبرې کوي، موږ بايد څه وکړو؟

ـ څوک ويلای شي چې د مشرانو خبرو ته غوږ نيول څه ګټه لري؟

**خبرې کول ځان ته اداب لري.**

**موږ بايد د خبرو کولو اداب په پام کې ونيسو.**

**څوک چې خبرې کوي، بايد خبرو ته يې غوږ ونيسو.**

**د چا په خبرو کې بې ځايه ورګډ نه شو.**

**په خبرو کې بايد وار په پام کې وساتو.**



## فعالیتونه:

ـ څو تنه زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو تنه زده کوونکي دې د لوست په متن کې هغه کلمې چې د (ب) توری یې په پیل، منځ او پای کې راغلی وي، په نښه کړي اوبیا دې هغه کلمې په خپلو کتابچو کې څو ځلې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې کلمو څخه د تختې پرمخ مناسبې جملې جوړې کړي.

**اداب خبرې پام وار**

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| وار | نوبت |
| ورگډ | ورداخلېدل |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# ترانه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ترانې د ویلو وړتیا پیدا کول.





**پوښتنه**:

ـ تاسو کومه ترانه ویلې یا اوریدلې ده؟

مور بچیان د دې هېواد
پیدا شوي یو ازاد
خویندې، ورونه افغانان
ګډ مو کور افغانستان
یو که نن مور کوچنیان
خو سبا ته یو لویان
دغه خاوره به کړو بڼ
کړو ډاګونه به یې چمن
خپل هېواد به کړو ودان
خو مو مټو کې وي توان

(....)



## فعالیتونه:

ـ څو تنه زده کوونکي دې ترانه په ډله ییزه توګه د ټولګي په مخکې په لوړ آواز ووایي او نور دې وریسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې د لوست په متن کې هغه کلمې په نښه کړي چې له څلور تورو څخه جوړې شوې وي، بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ که د کور په کلمه کې د (ک) توري پر ځای د (م) توری ولیکل شي، کومه کلمه ترې جوړېږي؟

ـ یو تن زده کوونکی دې د ترانې د مفهوم په اړه لنډې خبرې وکړي.

ـ له لاندې تورو څخه کلمې جوړې او بیا یې د تختې پر مخ په جملو کې راوړئ.

**ا ـ ف ـ غ ـ ا ـ ن　　　ک ـ و ـ ر　　　ه ـ ي ـ و ـ ا ـ د**

| لغت | معنا |
|---|---|
| کوچنیان | ماشومان |
| بڼ | باغ |
| ډاګونه | میدانونه |



## کورنۍ دنده:

د لوست له متن څخه دې په خپله خوښه څو کلمې وټاکي او هغه دې په جملو کې وکاروي.

# مرسته

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د مرستې په ارزښت او ګټو پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ له تاسو څخه څوک ویلای شي چې مرسته څه ته وايي؟

ـ تاسو کله له کوم بې وزله سره مرسته کړې ده؟

**له اړو کسانو سره مرسته کول ښه کار دی.**

**له بېوزلو سره مرسته د الله ﷻ د رضا سبب کېږي.**

**له ګاونډیو سره مرسته کول ډېر ثواب لري.**

**مور له خپلو خپلوانو سره مرسته کوو.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې متن په وار سره د ټولګي په مخکې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.

**مرسته بېوزلي کور**

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې د املا په توګه د تختې پر مخ ولیکي.

**مرسته رضا خویندو کور ښه کار**

ـ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او له یوبل سره دې د مرستې او کومک په هکله خبرې وکړي، بیا د هرې ډلې یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي او له بې وزلو سره د مرستې کولو په هکله دې لنډې خبرې وکړي.



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# پاکوالی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د پاکوالي په ارزښت او گټو پوهېدل.







**پوښتني**:

ـ که چېرې مور خپل ځان پاک ونه ساتو، څه پېښيږي؟

ـ څوک ویلای شي چې پاکوالی څه گټې لري؟

پـــاک ســاتـــم لاســـونـــه مې
پـــاک ســاتـــم غـاښـــونـه مې
پـاکـــې جـامـــې اغـــونـدم
پـــاک ســـاتـم بـوټــونـه مې
پـــاک خــــواړه اوبــه غـــوارم
پـــاک ســـاتـم ځــایــونـه مې
پـــاک ژونـــدکــې خـوشـحـالـه یم
پـــاک دي تــول کــارونــه مې
ښـکـلـــې پـــه پــاکــې یـمــه
گـــل د کـــورنـــۍ یـمــه



## فعالیتونه:

ــ څو زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ــ زده کوونکي دې د لاندې کلمو متضادې کلمې ولیکي:

**پاک　　　خوشحال　　　ښکلی**

ــ که د (پاک) په کلمه کې د (پ) پر ځای د (ن) توری ولیکو، څنګه لوستل کېږي؟

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د پاکوالي ترانه له یاده ولولي.

ــ زده کوونکي دې له لاندې کلمو څخه د تختې پر مخ لنډې جملې جوړې کړي.

**پاک　　　لاسونه　　　ښکلی　　　ژوند　　　ګل**

ــ زده کوونکي دې د پاکوالي د ګټو په اړه لنډې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې ترانه له یاده زده کړي.

اووه څلوېښتم لوست

# واکسين

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د واکسين په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو کله خپل ځانونه واکسين کړي دي؟

ـ تاسې په خپل کلي کې صحي کلينيک لرئ؟

**واکسين کول د روغتيا لپاره ډېر ارزښت لري.**

**واکسين ماشومان له ناروغيو څخه ساتي.**

**هر واکسين د اړوندو ناروغيو لپاره تطبيق کېږي.**

**د ماشومانو د واکسين دورې بايد بشپړې شي.**

**ميندې بايد خپل ماشومان واکسين کړي.**



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولګي په مخکې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ــ په متن کې دې داسې کلمې پیداکړي چې د (ن) توری ولري او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ــ زده کوونکي دې د (واکسین، ماشوم، کلینیک) کلمې په جملو کې وکاروي.

ــ زده کوونکي دې د متن لومړۍ جمله د املا په توګه ولیکي.

ــ زده کوونکي دې د واکسین د ارزښت په هکله لنډې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن څو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

اته څلوېښتم لوست

# نظافت

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د نظافت په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ــ ویلای شئ چې په پورتنیو انځورونو کې ماشومان څه کوي؟

ــ ویلای شئ چې ولې ځان پاک ساتو؟

ــ که نظافت ته پاملرنه ونه شي څه پېښېږي؟

## نظافت د ایمان جزء دی.
## نظافت د روغتیا لپاره ګټور دی.
## زه خپل ځان او کالي پاک ساتم.
## خپل غاښونه په مسواک یا برس سره مینځم.



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې له ورکړل شوو کلمو څخه جملې جوړې کړي.

**ایمان روغتیا ګټور نظافت**

ـ زده کوونکي دې د لوست له متن څخه دوه حرفي او درې حرفي کلمې په نښه کړي او بیا دې د تختې پرمخ ولیکي.

ـ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د نظافت په هکله دې له یو بل سره خبرې وکړي، بیا دې د هرې ډلې په استازیتوب یو زده کوونکی خپلې خبرې نورو ته واوروي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# سوله

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د سولې په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ تاسې د سولې په هکله څه اورېدلې دي؟

**مور په سوله کې په ارامۍ سره ښوونځي ته تلای شو.**

**خپل درسونه په ښه توګه ویلای شو.**

**سوله د ژوند اړتیا ده.**

**سوله د انسانانو ترمنځ مینه زیاتوي.**

**سوله نېکمرغي او جګړه بدمرغي راولي.**

**مور سوله غواړو.**



**فعالیتونه:**

ـ څو تنه زده کوونکي دې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې کلمو څخه جملې جوړې او په کتابچو کې دې ولیکي.

(**ماشومان سوله جګړه مینه**)

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې یو بل ته د تختې پر مخ املا ووایي.

**سوله مینه ژوند اړتیا نیکمرغي**

ـ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د سولې په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| نېکمرغي | خوشبختي |
| بدمرغي | بدبختي |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

پنځوسم لوست

# همکاري

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د همکارۍ په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو په پورتني انځور کې څه وینئ، خبرې پرې وکړئ؟

ـ تاسو له خپلو ټولګیوالو سره په کومو کارونو کې همکاري کولای شئ؟

**ټول انسانان یو بل ته اړتیا لري.**

**د اړتیا په وخت کې له اړو خلکو سره همکاري ښه کار دی.**

**موږ خپلې ستونزې یو د بل په همکارۍ حلوو.**

**موږ باید په کارونو کې له خپلې کورنۍ سره مرسته او همکاري وکړو.**



### فعالیتونه:

ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولګي په مخکې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په ساده جملو کې راوړي:

**انسانان** **همکاري** **ستونزې** **کورنۍ**

ـ د لوست اصلي مطلب څه شی دی؟ سم ځواب په نښه کړئ:

الف: د زغم او صبر په هکله خبرې اورېدل دي.

ب: په لوبوکې له شخړو څخه کار اخیستل دي.

ج: یو له بل سره همکاري کول.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د لوست لاندې جمله د املاء په توګه د تختې پر مخ ولیکي.

(**ټول انسانان یو بل ته اړتیا لري**.)



### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## يو پنځوسم لوست

# رښتیا ویل

**موخه**: د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او د رښتیا ویلو په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ تاسو ویلای شئ چې رښتیا ویل څه ګټه لري؟

ـ څه فکر کوئ چې دروغ ویل ولې ښه کار نه دی؟

**الله جل جلاله په رښتیا ویلو راضي کېږي.**

**رښتیا ویل د انسان ښه صفت دی.**

**خلک رښتیني انسانان خوښوي.**

**رښتیا ویل انسان له بېلا بېلو ګناهونو او بدیو څخه ژغوري.**



**فعالیتونه:**

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې راوړي.

**رښتیا راضي صفت خلک**

ـ زده کوونکي دې د متن لومړۍ جمله د املاء په توګه ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د رښتیا ویلو په اړه لنډې خبرې وکړي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| راضي کېږي | قانع کېږي |
| ژغوري | ساتي |



**کورنۍ دنده:**

د لوست متن دې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# ښه چلند

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د ښه چلند په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه**:

ـ تاسو د ښه چلند په اړه څه ویلای شئ؟

**ښه چلند له یو بل سره د انسانانو ښو کړو وړو ته وايي.**
**ښه زده کوونکي په کورنۍ، ښوونځي او هر ځای کې له خپلو دوستانو سره ښه چلند کوي.**
**په خپلو کړو وړو کې د مور، پلار، ښوونکو او مشرانو درناوی ساتي.**
**له زده کوونکو سره په ادب او احترام خبرې کوي.**



**فعالیتونه:**

ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولګي په مخکې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې راوړي:

**ښه زده کوونکي  پاملرنه  مشرانو  ادب  ښه چلند**

ـ څو زده کوونکي دې په متن کې داسې کلمې په نښه کړي چې ټکي ونه لري. بیا دې د تختې پرمخ ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ښه چلند په اړه لنډې خبرې وکړي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| ښه چلند | ښه خوی، ښه رویه |
| پاملرنه | توجه |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

درې پنځوسم لوست

# پر ځان باور

**موخه**: د لوست د کلمو او جملو سم لوستل، لیکل او په ځان د باور د پیدا کولو د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنې**:

ــ تاسو په انځور کې څه شی وینئ؟

ــ آیا تاسې پر ځان د باور په معنا او مطلب پوهېږئ؟

**ښه زده کوونکي پر ځان باندې باور لري چې خپل درسونه ښه زده کولای شي.**

**په هر ښه کار کې بریاوې لاس ته راوړلای شي.**

**په دې هم باور لري چې د درسونو تر څنګ له کورنۍ سره په کارونو کې هم مرسته کولای شي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې راوړي:

**باور　　کورنۍ　　توان　　مرسته**

ـ زده کوونکي دې په وار سره لاندې کلمې د املاء په توګه د تختې پر مخ ولیکي.

**درسونه　　بریاوې　　مرسته　　کارونو**

ـ زده کوونکي دې پر ځان د باور په اړه لنډې خبرې وکړي.

| **لغت:** | **معنا** |
| --- | --- |
| باور | یقین، ډاډ |
| بریاوې | کامیابی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست له ځان سره ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# زړه سوی

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د زړه سوي په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنې**:

ــ تاسو ویلای شئ چې زړه سوی څه ته وایي؟

ــ تاسو د زړه سوي په هکله کومه کیسه اورېدلې ده؟

**زړه سوی ترحم او مهربانۍ ته وایي.**

**د اسلام دین موږ زړه سوي ته رابولي.**

**زړه سوی یو ښه انساني صفت دی.**

**موږ باید پر ټولو مخلوقاتو باندې زړه سوی ولرو.**



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې لوست د یو بل په مرسته ولولي.

ــ زده کوونکي دې د جملو تش ځایونه د چوکاټ په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

| |
|---|
| صفت |
| زړه سوي |
| ثواب |

زړه سوی یو ښه انساني ............ دی.

د اسلام دین موږ ............ ته رابولي.

ــ زده کوونکي دې په متن کې داسې کلمې پیدا کړي چې د (ړ) توری ولري او بیا دې د تختې پر مخ ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د زړه سوي په اړه لنډې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د زړه سوي په هکله څو ساده جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ رهنما

وطن زما یې ځان له تا نه شم قربان
ته وینه د افغان ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ رهنما

اباد اوسې اباد وطن ته شې ښاد
مونږ سرښندو په تا او ساتو دې ازاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ رهنما

ته کور یې هم مې ګور ته پلار یې هم مې مور
ته زړه یې د اسیا زما د سترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ رهنما

ته ننګ یې د اریا او تاج یې د یما
ځارېږمه له تا افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ رهنما

محمد مُعین مرستیال